حرف دوه ډوله دی: ۱- عامل۲- غیر عامل.

۲: **مرکب**: هغه لفظ ته وایي، چې له دوو او یا تر دوو ډېرو کلیمو څخه جوړ شوی وي، چې بیا په خپل وار په دوه ډوله دی.

(۱) مفید (۲) غیر مفید.

**مرکب مفید**: دې ته وایي، چې ویونکی پرې غلی شي؛ نو اورېدونکی د تېرې پېښې په اړه خبر شي او یا پر غوښتنې وپوهېږي، لکه: ذَهَبَ زَیدٌ (زید لاړ) اِیْتِ بِالْمَاءِ (اوبه راوړه) له لومړۍ خبرې نه اورېدونکي ته د زید تلل او له دویمې خبرې نه اورېدونکي ته دا خبره په ډاګه شوه، چې خبرې کوونکی کس اوبه غواړي او مفید مرکب ته پر کلام سربېره جمله هم وایي او جمله دوه ډوله ده.

۱- خبري جمله ۲- انشایي جمله.

**خبري جمله**: خبري جمله هغې ته وایي، چې ویونکي ته یې د ریښتیني او یا درواغجن نسبت کېدای شي، چې دا په خپل وار په دوه ډوله ده:

۱- اسمیه جمله ۲- فعلیه جمله.

**اسمیه جمله**: هغې ته وایي، چې د جملې لومړۍ برخه اسم (نوم) وي او دویمه یې اسم او که فعل وي، لکه زَیَدٌ عَالِمٌ، زَیدٌ عَلِمَ، چې دا دواړه اسمیه خبریه جملې دي، چې د جملې لومړۍ برخه یې مسند الیه، چې مبتداء او دویمه یې مسند چې خبر هم بلل کېږي.

**فعلیه جمله**: دې ته وایي، چې لومړۍ برخه یې فعل او وروستۍ برخه یې فاعل وي، لکه: عَلِمَ زَیدٌ، سَمِعَ بَکْرٌ دا دواړه جملې فعلیه بلل کېږي او

دویمه برخه یې **مسند الیه** ده چې **"فاعل"** هم ورته وایي.

**مسند الیه**: هغه څه ته وایي، چې په جمله کې ورته د اسم او یا فاعل نسبت وشي او دې ته مبتداء ځکه وایي، چې له دې نه جمله راپیلېږي.

**مسند**: هغه کلمه ده، چې په جمله کې یې بل څه ته نسبت شوی وي او دې ته خبر ځکه وایي، چې دا له ځان نه د مخکني اسم څرنګوالی ښیي.

اسم مسند او مسند الیه دواړه کېدای شي، لکه زَيْدٌ عَالِمٌ چې په دې کې زَيْدٌ او عَالِمٌ دواړه نومونه دي او د عَالِمٌ نسبت زَيْدٌ ته کېږي؛ نو له دې امله زَيْدٌ مسند الیه او زَيْدٌ مسند شو.

**فعل** یوازې د مسندیه بڼه راتلای شي، نه د مسند الیه په بڼه لکه: زَيْدٌ عَالِمٌ، عَلِمَ زَيْدٌ په دې دواړو جملو کې د علم نسبت زید ته کېږي؛ نو له دې امله عَلِمَ مسند او زَيْدٌ مسند الیه شو.

**حرف**: نه مسند او نه مسند الیه وي.

**ترکیب**: د اسمي جملې ترکیب داسې وي، لکه: زَيْدٌ عَالِمٌ، زَيْدٌ یې مسند او عَالِمٌ یې خبر دی، چې د مبتداء او خبر له یوځای کولو څخه اسمیه خبریه جمله په لاس راغله.

د فعلي جملې ترکیب داسې وي، لکه: "عَلِمَ زَيْدٌ" عَلِمَ فعل او زَيْدٌ یې فاعل دی، چې د فعل او فاعل له یوځای کولو نه فعلیه جمله په لاس راځي.

**انشايي جمله**: هغه جمله ده، چې ويونکي ته يې د درواغو او رېښتينولۍ نسبت نه کېږي، ځکه انشاء د يو شي پيدا کولو ته وايي او په انشايي جمله کې هم د يوه کار د کولو غوښتنه وي؛ نو په دې کې درواغ او رېښتينولي ځای نه لري، لکه: اِضْرِبْ يعنې (ووهه!) چې په دې کې د (ضرب) پيدا کولو غوښتنه ده.

**د انشايي جملې ډولونه**

۱- **امر**: اِضْرِبْ (ويې وهه!)

۲- **نهې**: لَا تَضْرِبْ (مه يې وه!)

۳- **استفهام**: هَلْ ضَرَبَ زَيْدٌ؟ (ايا زيد وهل کړي دي ؟)

۴- **تمنی** : لَيْتَ زَيْدًا حَاضِرٌ (کاش! چې زيد حاضر وای)

۵- **ترجي**: لَعَلَّ عَمْرًوا غَائِبٌ (ښايي چې عمرو غايب وي)

۶- **عقود**: (راکړه ورکړه)، لکه: بِعْتُ وَاشْتَرَيْتُ (ما وپېرل او ما وپلورل)

۷- **نداء**: يَا اَللّٰهُ! (ای الله جل جلاله!)

۸- **غرض**: أَلَا تَأْتِيْنِيْ فَأُعْطِيَكَ دِيْنَارًا (ته ماته ولې نه راتلې، چې اشرفۍ مې درکړې وای)

۹- **قسم**: وَاللّٰهِ لَأَضْرِبَنَّ زَيْدًا (قسم په الله جل جلاله، چې زه به خامخا زيد وهم)

۱۰- **تعجب**: مَا أَحْسَنَهُ (هغه څومره ښکلی دی!)

**مرکب غير مفيد** (بې ګټې ترکيب) هغه دی، چې اورېدونکي ته ترې هيڅ ګټه

په لاس ورنشي، يعنې د ويونکي پر خبر او طلب (غوښتنه) يې ونه پوهېږي، چې دا په خپل وار په درې ډوله دی:

۱- اضافي مرکب ۲- بنايې مرکب ۳- منع صرف مرکب.

**۱- اضافي مرکب:** دې ته وايي، چې پکې د يوه اسم اضافت بل اسم ته شوی وي او د کوم اسم چې اضافت کېږي؛ نو هغې ته (مضاف) او کوم اسم ته، چې يې اضافت کېږي هغه (مضاف اليه) ويل کېږي، لکه چې په غُلَامُ زَيْدٍ کې د غلام اضافت زَيْدٍ ته شوی دی؛ نو په دې ترکيب کې غُلَامُ مضاف او زَيْدٍ مضاف اليه دی.

**۲- بنايي مرکب:** بنايي مرکب دې ته وايي، چې دوه نومونه يو شوي وي؛ خو د دې دواړو نومونو ترمنځ اضافي او اسنادي تړاو نه وي او همدا راز د دواړو نومونو ترمنځ د تړاو رامنځته کولو لپاره کوم حرف وي، لکه له أَحَدَ عَشَرَ نه تِسْعَةَ عَشَرَ پورې، چې دا په اصل کې أَحَدٌ وَ عَشَرٌ او تِسْعَةٌ وَ عَشَرٌ وو يعنې په اصل کې دا دواړه بېلا بېل اسمونه (نومونه) وو؛ خو د دوی ترمنځ د (واو) په حذفولو سره، له دواړو نه يو نوم جوړ شو.

د بنايي مرکب دواړه اسمونه (نومونه) زور لري، پرته له اِثْنَا عَشَرَ څخه، چې د دې لومړی برخه (چې اِثْنَا ده) اوړي راوړي.

**۳- منع صرف مرکب:** دا هغه ترکيب ته وايي، چې د دوو اسمونو له يوځای کولو نه په لاس راځي، په دې شرط، چې د دواړو نومونو ترمنځ به د تړاو لپاره کوم حرف نه وي، لکه بَعْلَبَكَّ چې دا د يوه ښار نوم دی، او له دوو

بېلا بېلو نومونو څخه جوړ شوی دی، لکه بَعْل د يوه بوت او بَكَّ د دغه ښار د بنسټګر پاچا نوم دی.

د منع صرف ترکيب لومړنۍ برخه تل زور لرونکې وي او دويمه برخه يې اوړي را اوړي، مرکب غير مفيد (بې ګټې ترکيب) بشپړه جمله نه وي، بلکې د جملې يوه برخه وي، لکه په "غُلَامُ زَيْدٍ حَاضِرٌ" کې غُلَامُ زَيْدٍ او په "جَاءَ أَحَدَ عَشَرَ رَجُلًا" کې أَحَدَ عَشَرَ او په إِبْرَاهِيْمُ سَاكِنُ بَعْلَبَكَّ کې بَعْلَبَكَّ منع صرف ترکيب دی.

## معرب او مبني

د وروستي توري د بدلون له پلوه کلمه دوه ډوله ده.

۱- معرب ۲- مبني.

۱- **معرب**: هغه کلمه ده، چې وروستی توری يې همېشه بدلېږي او هغه لامل، چې له امله يې دغه بدلون راځي عامل بلل کېږي او هغه بدلېدونکي شي ته اِعراب وايي.

اعراب دوه ډوله دی:

۱- **حرکتي** لکه: زور، زېر، پېښ.

۲- **حرفي** لکه "واو، الف، يا" او همدا راز وروستي توري ته د اعراب محل وايي، لکه: جَاءَ زَيْدٌ چې په دې کې جَاءَ عامل دی او پر زَيْدٌ باندې پېښ دی، همدا راز په رَأَيْتُ زَيْدًا کې رَأَيْتُ عامل دی او پر زَيْدًا باندې زور دی، مَرَرْتُ بِزَيْدٍ کې "بـ" حرف جار عامل او تر "زيد" لاندې زېر

دی، پس "زید" معرب دی او د "زید" وروستی توری "دال" د اعراب محل دی او ضمه، فتحه، کسره يې اعراب دی.

**مبني**: هغې کلمې ته وايي، چې تل په يوه حال وي، يعنې د عامل له بدلېدو سره يې په وروستي حرکت کې هيڅ بدلون نه راځي، لکه: جَاءَ هٰذَا، رَأَيْتُ هٰذَا، مَرَرْتُ بِهٰذَا، په دې بېلګو کې "هٰذَا" مبني دی، چې تل په يوه حال وي.

*مبنی آن باشد که ماند برقرار ـ معرب آن باشد که گردد بار بار.*

"مبنی هغه دی، چې په يو حالت وي – معرب هغه دی چې ګرځي را ګرځي، يعنې اوړي، راوړي".

**د نا متمکن اسم ډولونه**

نامتمکن اسم يا مبني اته ډوله دی:

| | | |
|---|---|---|
| ۱- مضمرات | ۲- اسماء موصوله | ۳- اسماء اشاره |
| ٤- اسماء افعال | ٥- اسماء اصوات | ٦- اسماء ظروف |
| ۷- اسماء کنايات | ۸- مرکب بنايي | |

**۱- مضمرات**: په خپل وار پنځه ډوله دي:

| | | |
|---|---|---|
| ۱- مرفوع متصل | ۲- مرفوع منفصل | ۳- منصوب متصل |
| ٤- منصوب منفصل | ٥- مجرور متصل | |

**ضمير مرفوع متصل**: يعنې د فاعل هغه ضمير، چې په فعل پورې پېوسته وي، دا څوارلس دي:

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ضَرَبْتُ | ضَرَبْنَا | ضَرَبْتَ | ضَرَبْتُمَا | ضَرَبْتُمْ | ضَرَبْتِ | ضَرَبْتُمَا |
| ضَرَبْتُنَّ | ضَرَبَ | ضَرَبَا | ضَرَبُوْا | ضَرَبَتْ | ضَرَبَتَا | ضَرَبْنَ |

**ضمير مرفوع منفصل**: يعنې د فاعل هغه ضمير، چې په فعل پورې پېوسته نه وي، دا هم څوارلس دي:

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَنَا | نَحْنُ | أَنْتَ | أَنْتُمَا | أَنْتُمْ | أَنْتِ | أَنْتُمَا |
| أَنْتُنَّ | هُوَ | هُمَا | هُمْ | هِيَ | هُمَا | هُنَّ |

**يادونه**: مرفوع ضمير له فاعل پرته د نورو مرفوعاتو لپاره هم راځي او دلته يوازې د اسانتيا لپاره د فاعل يادونه شوې ده.

**ضمير منصوب متصل**: يعنې د مفعول هغه ضمير، چې په فعل پورې پېوسته وي، دا څوارلس دي:

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ضَرَبَنِيْ | ضَرَبَنَا | ضَرَبَكَ | ضَرَبَكُمَا | ضَرَبَكُمْ | ضَرَبَكِ | ضَرَبَكُمَا |
| ضَرَبَكُنَّ | ضَرَبَهُ | ضَرَبَهُمَا | ضَرَبَهُمْ | ضَرَبَهَا | ضَرَبَهُمَا | ضَرَبَهُنَّ |

**ترکيب**: ضَرَبَ فعل، هُوَ ضمير پکې فاعل "نون وقايه"، "يا" ضمير د متکلم مفعول به دی؛ نو فعل سره له فاعل او مفعول به جمله فعليه خبريه شوه.

**ضمير منصوب منفصل**: يعنې د مفعول هغه ضمير، چې په فعل پورې پېوسته نه وي او دا هم څوارلس دي:

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| إِيَّايَ | إِيَّانَا | إِيَّاكَ | إِيَّاكُمَا | إِيَّاكُمْ | إِيَّاكِ | إِيَّاكُمَا |
| إِيَّاكُنَّ | إِيَّاهُ | إِيَّاهُمَا | إِيَّاهُمْ | إِيَّاهَا | إِيَّاهُمَا | إِيَّاهُنَّ |

**يادونه**: د منصوب ضمير له مفعول پرته د نورو منصوباتو لپاره هم راځي او دلته د اسانتيا لپاره يوازې د مفعول يادونه شوې ده.

**ضمير مجرور متصل**: دا هم څوارلس دي او په خپلو کې دوه ډوله دي، يو هغه چې حرف جر پرې داخل وي، دويم هغه چې مضاف پرې داخل وي.

**ضمير مجرور بحرف جر**:

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لِيْ | لَنَا | لَكَ | لَكُمَا | لَكُمْ | لَكِ | لَكُمَا |
| لَكُنَّ | لَهُ | لَهُمَا | لَهُمْ | لَهَا | لَهُمَا | لَهُنَّ |

**ضمير مجرور باضافت**:

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دَارِيْ | دَارُنَا | دَارُكَ | دَارُكُمَا | دَارُكُمْ | دَارُكِ | دَارُكُمَا |
| دَارُكُنَّ | دَارُهُ | دَارُهُمَا | دَارُهُمْ | دَارُهَا | دَارُهُمَا | دَارُهُنَّ |

**فايده**: کله له جملې نه مخکې د غائب ضمير له مرجع پرته راځي، دغه ضمير که د مذکر وي؛ نو دې ته ضمير شان وايي؛ خو که د مؤنث وي؛ نو کيسه يې ضمير (ضمير قصه) بلل کېږي، تر ضمير وروستۍ جمله به د دې تفسير کوي، لکه إِنَّهُ زَيْدٌقَائِمٌ "په تحقيق سره کيسه دا ده چې زيد ولاړ دی"، إِنَّهَا زَيْنَبُ قَائِمَةٌ "په تحقيق سره کيسه دا ده چې زينب ولاړه ده".

**۲- اسماء موصوله:**

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَلَّذِیْ هغه يو سړی | اَلَّذَانِ هغه دوه سړي | اَلَّذَیْنِ هغه دوه سړي | اَلَّذِیْنَ هغه ډېر سړي | اَلَّتِیْ هغه يوه ښځه | اَلَّتَانِ هغه دوه ښځې |
| اَللَّتَیْنِ هغه دوه ښځې | اَللَّاتِیْ هغه ټولې ښځې | اَللَّوَاتِیْ هغه ټولې ښځې | مَا هغه شی چې | مَنْ هغه سړی چې | أَيٌّ أَيَّةٌ |

او الف لام په معنی د اَلَّذِیْ په اسم فاعل او اسم مفعول کې، لکه اَلضَّارِبُ په معنی د اَلَّذِیْ ضَرَبَ، او اَلْمَضْرُوْبُ په معنی د اَلَّذِیْ ضُرِبَ، او ذُوْ په معنی د اَلَّذِیْ د بنوطی قبیلې په ژبه کې، لکه: جَاءَ ذُوْ ضَرَبَكَ معنی اَلَّذِیْ ضَرَبَكَ.

أَيٌّ او أَيَّةٌ معرب دي او له اضافت پرته نه کارېږي.

**فايده**: موصول اسم هغه اسم دی، چې له صلې پرته دجملې پوره برخه نشي کېدای او صله به هغه خبريه جمله وي، چې ضمير يې موصول ته ګرځي، لکه: جَاءَ الَّذِیْ أَبُوْهُ عَالِمٌ (هغه سړی راغی، چې پلار يې عالم دی).

**ترکيب**: جَاءَ فعل، اَلَّذِیْ موصول اسم، "أَبُوْهُ" د مضاف اليه مضاف دی، مضاف سره له مضاف اليه مبتدا او عَالِمٌ يې خبر شو؛ نو مبتدا سره له خبر نه اسميه صله جمله شوه، موصول سره له صلې نه د جَاءَ فاعل

شو؛ نو فعل سره له فاعل نه جمله فعليه خبريه شوه.

**اسماء اشاره**: دا په دوه ډوله دي:

۱- د نږدې لپاره اشاره ۲- د لرې لپاره اشاره.

د نږدې لپاره کارېدونکې اشارې دا دي:

| هٰذَا | هٰذَانِ | هٰذِهِ | هَاتَانِ | هٰؤُلَآءِ |
|---|---|---|---|---|
| دا يو سړی | دا دوه سړي | دا يوه ښځه | دا دوه ښځې | دا ډېر سړي يا ډېرې ښځې |

د لرې لپاره کارېدونکې اشارې دا دي:

| ذٰلِكَ | ذَانِكَ | تِلْكَ | تَانِكَ | أُولٰئِكَ |
|---|---|---|---|---|
| هغه يو سړی | هغه دوه سړي | هغه يوه ښځه | هغه دوه ښځې | هغه ډېر سړي يا ډېرې ښځې |

**فايده**: چا ته، چې اشاره کېږي هغه ته مُشار اليه وايي لکه: هٰذَا الْقَلَمُ نَفِيْسٌ، په دغه مثال کې اَلْقَلَمُ مُشار اليه دی.

**ترکيب**: هٰذَا اسم اشاره اَلْقَلَمُ مُشار اليه، اشاره سره له مُشار اليه نه مبتدا، نَفِيْسٌ خبر، مبتدا سره له خبره جمله اسميه خبريه شوه.

**۴- اسماء افعال**: د فعل په معنی اسماء دوه ډوله دي:

**د امر حاضر په معنی، لکه:**

| رُوَيْدَ | بَلْهَ | حَيَّهَلْ | هَلُمَّ | دُوْنَكَ | عَلَيْكَ | هَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| پرېږده؟ | پرېږده؟ | خير شه | راشه | واخله | لازم ونسه | ونيسه |

**د فعل ماضي په معنی، لکه:**

| هَيْهَاتَ | شَتَّانَ | سَرْعَانَ |
|---|---|---|
| لرې.شوه | جدا شوه | چټکي يې وکړه |

**۵- اسماء اصوات**، هغه اسمونه دي، چې د يوه غږ د نقلولو په موخه ويستل کېږي، لکه: أُحْ أُحْ "د ټوخي غږ" أُفْ أُفْ "د درد او زګېروي غږ"، بَخَّ بَخَّ "د خوشالۍ غږ"، نَخَّ نَخَّ "د اوښ کېنولو لپاره غږ"، عَاقَ "دکارغه غږ".

**۶- اسمائي ظروف**: دا هغه کليمات دي، چې پکې د ظرفِ زمان او مکان معنی ګاڼې وي.

**۱- ظرف زمان**: لکه: إِذْ، إِذَا، مَتٰى، كَيْفَ، أَيَّانَ، أَمْسِ، مُذْ، مُنْذُ، قَطُّ، عَوْضُ، قَبْلُ، بَعْدُ.

إِذْ: د ماضي لپاره راځي که څه هم پر مستقبل داخل شي تر دې وروسته جمله اسميه او فعليه دواړه راتلی شي، لکه: جِئْتُكَ إِذْ طَلَعَتِ الشَّمْسُ، وَإِذِ الشَّمْسُ طَالِعَةٌ.

إِذْا: دا د مستقبل لپاره راځي؛ خو که پر ماضي داخل شو؛ نو د مستقبل پر معنی يې اړوي، لکه: "اِذَا جَآءَ نَصْرُ اللّٰهِ" او اٰتِيْكَ إِذَا طَلَعَتِ الشَّمْسُ، کله مفاجات (ناڅاپي) لپاره هم راځي، لکه: خَرَجْتُ فَإِذَا السَّبُعُ وَاقِفٌ (زه ووتم پس ناڅاپه داړونکی ځناور ولاړ و).

مَتٰى: د شرط او استفهام لپاره راځي، لکه: مَتٰى تَصُمْ أَصُمْ (چې کله ته روژه نيسې زه به يې هم نيسم) دا د شرط مثال دی او مَتٰى تُسَافِرُ؟ (ته به کله سفر کوې؟) د استفهام مثال دی.

كَيْفَ: د حال پوښتلو لپاره راځي، لکه: كَيْفَ أنْتَ؟ أَىْ فِيْ أىِّ حَالٍ أَنْتَ؟ (ته څنګه يې؟).

أَيَّانَ: د وخت پوښتلو لپاره راځي، لکه: اَيَّانَ يَوْمُ الدِّيْنِ (د قيامت ورځ به کله وي؟)

أَمْسِ: لکه: جَاءَنِيْ زَيْدٌ أَمْسِ (زيد پرون ما ته راغلی و).

مُذْوَمُنْذُ: دا دواړه د کار ابتدايې موده ښايي، لکه: مَا رَأَيْتُهُ مُذْ يَوْمِ الْجُمْعَةِ (د جمعې له ورځې نه مې هغه نه دی ليدلی) او د پوره مودې لپاره هم راځي، لکه: مَا رَأَيْتُهُ مُنْذُ يَوْمَيْنِ (له دوو ورځو څخه مې هغه نه دی ليدلی).

قَطُّ: د ماضي منفي تاکيد لپاره راځي، لکه: مَا ضَرَبْتُهُ قَطُّ (ما هغه

هېڅکله نه دی وهلی).

عَوْضُ: د مستقبل منفي تاکید لپاره راځي، لکه: لَا أَضْرِبُهُ عَوْضُ (زه به هغه کله هم نه وهم)

قَبْلُ و بَعْدُ: کله چې مضاف وي او مضاف الیه د متکلم نیت کې وي، لکه د الله تعالی دغه سپېڅلی فرمان: (لِلّٰهِ الْاَمْرُ مِنْ قَبْلُ وَ مِنْ بَعْدُ) أَیْ مِنْ قَبْلِ کُلِّ شَیْءٍ وَ مِنْ بَعْدِ کُلِّ شَیْءٍ او لکه: أَنَا حَاضِرٌ مِنْ قَبْلُ، یعنې منْ قَبْلِكَ، مَتٰی تَجِیْئُنَا بَعْدُ یعنې بَعْدَ هٰذَا.

۲- **ظروف مکان**: حَیْثُ، قُدَّامُ، خَلْفُ، تَحْتُ، فَوْقُ، عِنْدَ، أَیْنَ، لَدٰی، لَدُنْ.

حَیْثُ: اکثره د جملې لور ته مضاف کېږي، لکه: اِجْلِسْ حَیْثُ زَیْدٌ جَالِسٌ یعنې اِجْلِسْ مَکَانَ جُلُوْسِ زَیْدٍ.

قُدَّامُ وَ خَلْفُ: لکه قَامَ النَّاسُ قُدَّامُ وَخَلْفُ، یعنې قُدَّامَهُ وَخَلْفَهُ.

تَحْتُ وَ فَوْقُ: لکه جَلَسَ زَیْدٌ تَحْتُ وَصَعِدَ عَمْرٌو فَوْقُ، أَیْ تَحْتَ الشَّجَرَةِ وَفَوْقَ الشَّجَرَةِ مَثَلًا.

عِنْدَ: لکه: اَلْمَالُ عِنْدَ زَیْدٍ (مال له زید سره دی)

أَیْنَ وَأَنّٰی: باید د استفهام لپاره راشي، لکه: أَیْنَ تَذْهَبُ (ته چېرته ځې؟)، أَنّٰی تَقْعُدُ؟ (ته چېرته کېنې؟)، یا د شرط لپاره لکه: أَنّٰی تَجْلِسْ أَجْلِسْ (ته چې چېرته کېنې، زه هم هلته کېنم)، أَنّٰی تَذْهَبْ

أَذْهَبْ (ته چې چېرته ځې، زه هم هلته ځم)، أَنّٰى د كَيْفَ په معنی هم راځي؛ خو چې تر فعل وروسته راشي، لکه: د الله جَلَّ جَلَالُهُ دغه وینا: "فَأْتُوا حَرْثَكُمْ أَنّٰى شِئْتُمْ" أَيْ كَيْفَ شِئْتُمْ.

لَدٰى وَ لَدُنْ: دا دواړه د عِنْدَ په معنی راځي؛ خو توپير يې دا دی، چې په عِنْدَ کې قبضه او ملک کې کېدل کافی دي، هر وخت ځان سره کېدل ضروري نه دي، لکه اَلْمَالُ عِنْدَ زَيْدٍ (مال له زيد سره دی) کېدای شي خزانه کې وي يا زيد سره وي، او اَلْمَالُ لَدٰى زَيْدٍ به هغه وخت وايو، چې مال له زيد سره وي؛ نو عِنْدَ عام دی لَدٰى او لَدُنْ خاص دي.

**فايده - ۱**: قَبْلُ، بَعْدُ، تَحْتُ، فَوْقُ، قُدَّامُ، خَلْفُ، حَيْثُ، قَطُّ، عَوْضُ، مبنی په ضمه (پېښ) دی، أَيَّانَ، كَيْفَ، أَيْنَ، مبنی په فتحه دی، أَمْسِ، مبنی په کسره دی، باقي نور ظروف مبنی په سکون دي.

**فايده - ۲**: ظروف غير مبنيه، چې کله جمله يا إِذْ لور ته مضاف شي؛ نو د هغوی مبنی کېدل په فتحه روا دي، لکه د الله تعالی دا وینا: "هٰذَا يَوْمُ يَنْفَعُ الصّٰدِقِيْنَ صِدْقُهُمْ" نو دلته يَوْمَ زور لرونکی ويل روا دي، لکه: يَوْمَئِذٍ، حِيْنَئِذٍ

۷- **اسمائي کنايات**: دې ته وايي، چې پر مبهم شي دلالت کوي، لکه: كَمْ، كَذَا

له شمېر نه کنايه ده، همدا راز كَيْتَ، ذَيْتَ له خبرو نه کنايه ده.

**۸ - مرکب بنايي**: لکه: أَحَدَ عَشَرَ.

## معرفه او نکره

اسم د عام او خاص له پلوه دوه ډوله دی:

۱- معرفه ۲- نکره.

**۱ - معرفه**: هغه اسم ته وايي، چې د يوه ځانګړي شي لپاره جوړ شوی وي، چې دا په خپل وار په اوه ډوله ده.

**۱ - ضمير**: دا هغه اسم ته وايي ، چې د نوم پر ځای کارېږي، لکه: هُوَ، أَنْتَ، أَنَا، نَحْنُ.

**۲ - عَلَم**: هغه اسم ته وايي، چې د يو ځانګړي ښار، يا د کوم ځانګړي سړي او يا د ځانګړي شي نوم وي لکه: زَيْدٌ، دِهْلِيْ، زَمْزَمُ.

**۳ - اسم اشاره**: هغه اسم ته وايي ، چې د هغې په مرسته د يوه ځانګړي شي لور ته اشاره کېږي. لکه: هٰذَا – ذٰلِكَ.

**۴ - اسم موصول**: هغه اسم ته وايي، چې له صلې سره يو ځای د جملې برخه وګرځي لکه: اَلَّذِيْ، اَلَّتِيْ.

**۵ - معرف باللام**: هغه اسم ته وايي، چې پر نکره باندې د لام داخلېدو سره ترې معرفه جوړه شي لکه: اَلرَّجُلُ .

**۶ - هغه اسم**: چې له دغو پنځو نه يوه ته مضاف شي، چې بېلګې يې په ترتيب سره په لاندې ډول دي:

غُلَامُهُ، فَرَسُكَ، كِتَابِيْ، غُلَامُ زَيْدٍ، سَاكِنُ الدَّهْلِيْ، مَاءُ زَمْزَمَ، كِتَابَ هٰذَا، فَرَسُ ذٰلِكَ، غُلَامُ الَّذِيْ عِنْدَكَ، بِنْتُ الَّتِيْ ذَهَبَتْ، قَلَمُ الرَّجُلِ.

**۷- معرفه پهٔ نداء سره**: هغه اسم ته وايي، چې د غږ له امله ترې معرفه جوړه شي، لکه: يَا رَجُلُ! چې په دې کې "يَا" د نداء توری او رَجُلٌ يې منادي ده.

**نکره**: هغه اسم ته وايي، چې د کوم نامعلومه يعنې عام شي لپاره جوړ وي، لکه: فَرَسٌ د کوم ځانګړي اس نوم نه دی، بلکې په عربي ژبه کې هر اس ته فَرَسٌ وايي او چې کله فَرَسُ زَيْدٍ يا فَرَسُ هٰذَا ووايي؛ نو بيا خاص معرفه شوه.

## مذکر او مؤنث

د جنس له پلوه اسم دوه ډوله دی:

۱- مذکر ۲- مؤنث.

**مذکر**: هغه اسم ته وايي، چې د تانيث هيڅ لفظي او تقديري نښه پکې نه وي، لکه: رَجُلٌ، فَرَسٌ.

**مؤنث**: هغه اسم ته وايي، چې د تانيث لفظي يا تقديري نښه پکې وي، د نښې له پلوه مؤنث دوه ډوله دی:

۱- قياسي ۲- سماعي.

**۱- قياسي مؤنث**: هغه دی، چې د تانيث علامه يې په الفاظو کې

موجوده وي او د لفظي تانيث علامې درې دي: ۱- حقيقي "ة" وي لکه په طَلْحَةُ کې چې ده، يا حُکْمًا وي لکه د عَقْرَبُ په څلورم توري کې د تانيث "ة" حکمًا ده، ۲- مقصوره زائده الف، لکه په حُبْلٰى، صُغْرٰى، کُبْرٰى کې چې دى، ۳- ممدوده الف، لکه په حَمْرَاءُ، بَيْضَاءُ کې چې دى.

**۲- سماعي مؤنث:** هغه دى، چې د تانيث نښه پکې پټه پرته وي، لکه په أَرْضٌ، شَمْسٌ کې چې پټه پرته ده، چې دا په اصل کې أَرْضَةٌ وَ شَمْسَةٌ وو، ځکه تصغير يې أُرَيْضَةٌ وَ شُمَيْسَةٌ راځي، له تصغير څخه د شي اصلي حالت ښکاره کېږي؛ نو داسې مؤنث ته سماعي مؤنث وايي، چې ښکاره پکې "ة" نه وي؛ خو په اصل کې يې موندل کېږي.

د ذات له مخې مؤنث په دوه قسمه دى: ۱- حقيقي ۲- لفظي.

**۱- حقيقي مؤنث:** هغه دى، چې د نارينه ساکښ په مقابله کې کارېږي او بل دا چې د تانيث نښه پکې موجوده وي، يعنې د تانيث "ة" پکې وي، لکه په اِمْرَأَةٌ کې چې ده او د رَجُلٌ په مقابل کې کارېږي او يا، لکه أَتَانٌ ، چې خرې ته ويل کېږي او په مقابل کې يې حِمَارٌ کارېږي، چې دا خر ته وايي.

**۲- لفظي مؤنث:** هغو نومونو ته وايي، چې په مقابل کې يې نارينه ساکښ نوم نه کارېږي، لکه ظُلْمَةٌ، عَيْنٌ چې لفظي مؤنث نومونه دي؛

خو په مقابل کې يې نارينه ساکښ نوم نه کاربږي او د دې نومونو تصغير عُيَيْنَةٌ راځي.

## واحد تثنيه جمع

د شمېر له پلوه اسم درې ډوله دی:

۱- واحد ۲- تثنيه ۳- جمع.

۱- **واحد**: هغه اسم ته وايي، چې پر يوه باندې دلالت کوي، لکه : رَجُل، چې يوه سړي ته وايي، يا لکه إِمْرَأَةٌ يوې ښځې.ته وايي

۲- **تثنيه**: هغه څه ته وايي، چې پر دوو باندې دلالت کوي او له واحد نه تثنيه داسې جوړېږي، چې د واحد صيغي په په پای کې "زېر لرونکی نون" او له "نون" نه مخکې "يا" او يا "زور لرونکی الف" او "زېر لرونکی نون" ور زيات شي؛ نو په دې سره له واحد نه تثنيه جوړېږي، لکه: رَجُلَانِ، رَجُلَيْنِ.

۳- **جمع**: دې ته وايي، چې تر دوو زياتو شيانو باندې دلالت کوي او په واحد کې د لږ بدلون په رامنځته کولو سره له واحد نه جمع جوړېږي او دغه ډېربښت کله په الفاظو کې وي، لکه په رِجَالٌ، مُسْلِمُوْنَ دواړو کې، چې دی يا تقديراً وي، لکه: فُلْكٌ، چې د قُفْلٌ په وزن يوې کښتۍ ته وايي او فُلْكٌ د أُسْدٌ په وزن ډېرو کښتيو ته ويل کېږي.

**فايده**: د نړۍ په ټولو ژبو کې تقريبا بوازې واحد او جمع وي؛ خو عربي ژبه دا ځانګړتيا هم لري، چې يو، دوه او ورپسې جمع لري، يعنې د

جمعې اطلاق پر درېیو او له درېیو پر زیاتو کېږي.

**د جمعې ډولونه**: د لفظ له پلوه جمع دوه ډوله ده:

۱- مکسره ۲- جمع سالمه.

**۱- مکسره جمع**: هغې جمعې ته وايي، چې د واحد صیغه پکې سالمه نه وي پاتې، لکه په رِجَالٌ کې، چې د واحد صیغه رَجُلٌ سالمه نه ده پاتې، بلکې په منځ کې یې د "الف" په راتلو سره د تورو په ترتیب بدلون رامنځته شوی دی؛ نو دې ته د "تکسیر جمع" هم وايي.

**۲- سالمه جمع**: هغې جمعې ته وايي، چې د واحد صیغه پکې سالمه پاتې وي، چې دا په خپل وار دوه ډوله ده:

**۱- مذکر سالمه جمع**: دا هغې جمعې ته وايي، چې پکې له "و" نه مخکې پېښ او وروسته ترې "زور لرونکی نون" وي، لکه: مُسْلِمُونَ او یا ترې مخکې "زېر لرونکې یا" او وروسته ترې "زور لرونکی نون" وي، لکه: مُسْلِمِيْنَ.

**۲- مؤنث سالمه جمع**: هغې جمعې ته وايي، چې په پای کې یې "الف" او د "تانیث ة" راغلې وي، لکه: مُسْلِمَاتٌ.

د معنی له پلوه جمع دوه ډوله ده: ۱- د قلت جمع ۲- د کثرت جمع.

**د قلت جمع**: هغه جمع ده، چې له لسو څخه پر لږو یې اطلاق کېږي او دغه ډول جمع څلور وزنونه لري.

۱_ أَفْعُلٌ لکه: أَكْلُبٌ (چې د كَلْبٌ جمع ده).

٢_ أَفْعَالٌ لکه: أَقْوَالٌ (چې د قَوْلٌ جمع ده).

٣_ أَفْعِلَةٌ لکه: أَطْعِمَةٌ (چې د طَعَامٌ جمع ده).

٤_ فِعْلَةٌ لکه: غِلْمَةٌ (چې د غُلَامٌ جمع ده).

او سالمه جمع هم له "الف لام" پرته د قلت په جمع کې شمېرل کېږي، لکه: عَاقِلُوْنَ، عَاقِلَاتٌ.

**د کثرت جمع**: هغې جمعې ته وايي، چې پر لسو او تر لسو يې په زياتو اطلاق کېږي، دا جمع جلا وزنونه لري، چې لس مشهور وزنونه يې په لاندې ډول دي.

| وزن | واحد | جمع | وزن | واحد | جمع |
|---|---|---|---|---|---|
| ١. فِعَالٌ | عَبْدٌ | عِبَادٌ | ٦. فُعَّالٌ | خَادِمٌ | خُدَّامٌ |
| ٢. فُعَلَاءُ | عَالِمٌ | عُلَمَاءُ | ٧. فَعْلٰى | فَرِيْضٌ | مَرْضٰى |
| ٣. أَفْعِلَاءُ | نَبِيٌّ | أَنْبِيَاءُ | ٨. فَعَلَةٌ | طَالِبٌ | طَلَبَةٌ |
| ٤. فُعُلٌ | رَسُوْلٌ | رُسُلٌ | ٩. فِعَلٌ | فِرْقَةٌ | فِرَقٌ |
| ٥. فُعُوْلٌ | نَجْمٌ | نُنُجُمٌ | ١٠. فِعْلَانٌ | غُلَامٌ | غِلْمَانٌ |

**فايده**: د څلور توريزو او پنځه توريزو نومونو جمع اکثره د منتهی الجموع په وزن راځي او دا هم درې مشهور وزنونه دي، چې په لاندې ډول دي.

١_ مَفَاعِلُ لکه: مَسْجِدٌ نه مَسَاجِدُ.

۲_ مَفَاعَيْلُ      لکه: مِفْتاح نه مَفْتَاح .

۳_ فَعَائِلُ      لکه: رِسَالَةٌ نه رَسَائِلُ.

**منتهی الجموع**: هغه جمع ده، چې د "جمعې تر الف" وروسته دوه توري وي، لکه: مَسَاجِدُ، یا یو شد لرونکی توری وي، لکه: دَوَابٌّ، یا درې توري وي؛ خو په دې شرط چې منځنی توری به یې ساکن وي، لکه: مَفَاتِيْحُ.

**فایده - ۱**: ځینې جمعې داسې هم وي، چې له سره په جمع کې یې د واحد لفظ نه راځي، لکه د إِمْرَأَةٌ جمع، چې نِسَاءٌ او د ذُوْ جمع أُوْلُوْ ده.

**فایده - ۲**: کله واحد د جمع اسم معنی هم ورکوي، لکه: قَوْمٌ، رَهْطٌ، رَكْبٌ دې ته جمع اسم هم وایي.

**فایده - ۳**: دځینو الفاظو جمع د قیاس پر عکس هم راځي لکه: د أُمٌّ جمع أُمَّهَاتٌ، د فَمٌ جمع أَفْوَاهٌ، د مَاءٌ جمع مِيَاهٌ، د إِنْسَانٌ جمع أُنَاسٌ، د شَاةٌ جمع شِيَاةٌ.

## منصرف غیر منصرف

معرب اسم دوه ډوله دی: ۱- منصرف ۲- نا منصرف.

**منصرف**: هغه اسم ته وایي، چې د منع صرف له اسبابو نه پکې کوم سبب نه وي او درې واړه حرکتونه او تنوین پرې راځي، لکه: زَيْدٌ.

**نا منصرف**: هغه اسم ته وایي، چې د منع صرف دوه سببونه پکې راغلي وي او یا پکې یو راغلی وي، چې د دوو پر ځای کار کوي، همدا راز کسره

اوتنوين پرې نه راځي.

د منع صرف ټول نهه اسباب دي، چې په لاندې ډول دي:

١- عدل ٢- وصف ٣- تانيث ٤- معرفه ٥- عجمه

٦- جمع ٧- ترکيب ٨- د فعل وزن ٩- الف، نون زائد تان .

لاندیني بیتونه د منع صرف د اوو واړو سببونو ټولګه ده.

عَدْلٌ وَوَصْفٌ وَتَأْنِيْثٌ وَعُجْمَةٌ ثُمَّ جَمْعٌ ثُمَّ تَرْكِيْبُ

وَمَعْرِفَةٌ وَالنُّوْنُ زَائِدَةً مِنْ وَوَزْنُ فِعْلٍ وَهٰذَا الْقَوْلُ

قَبْلِهَا أَلِفٌ تَقْرِيْبُ

د دغه هر يوه سبب جلا جلا بېلګه په لاندې ډول ده:

١ـ په عُمَرُ کې دوه سببه دي، چې يو يې عدل او بل يې معرفه ده.

٢ـ په ثُلَاثُ کې دوه سببه دي، وصف او عدل.

٣ـ په طَلْحَةُ کې دوه سببه دي، تانيث اومعرفه .

٤ـ په زَيْنَبُ کې دوه سببه دي، معرفه او تانيث .

٥ـ په إِبْرَاهَيْمُ کې دوه سببه دي، عجمه اومعرفه.

٦ـ په مَسَاجِدُ کې هم دوه سببه دي، چې يو يې جمع او بل يې منتهى الجموع.

٧ـ په بَعْلَبَكَّ کې دوه سببه دي، ترکيب ومعرفه.

٨ـ په اَحْمَدُ کې دوه سببه دي، د فعل وزن او معرفه.

٩ـ همدا راز په سَكْرَانُ کې هم دوه سببه دي، الف او نون زائد تان

ووصف.

**فایده - ۱**: د نحویانو په اصطلاح کې عدل دې ته وایي، چې یو اسم له خپلې اصلي صیغې نه بلې صیغې ته واوړي.

## مرفوعات

مرفوعات اته دي:

۱- فاعل　　۲- مفعول مَا لَمْ يُسَمَّ فَاعِلُهُ　　۳- مبتدا

٤- خبر　　٥- خبر د إِنّ وغیره　　٦- د ما او لا اسم

۷- د كَانَ وغیره اسم　　۸- د لا يې نفي جنس خبر.

**۱- فاعل**: هغه اسم دی، چې تر فعل مخکې راغلی وي او فعل ورته د قیام په طریقې منسوب وي، یعنې دغه فعل له دې اسم څخه صادر شوی وي، لکه: قَامَ زَيْدٌ، ضَرَبَ عَمْرٌو.

فاعل پر دوه ډوله دی: ۱- ښکاره ۲- مضمر.

د ښکاره "اسم ظاهر" فاعل مثال، لکه قَامَ زَيْدٌ، چې په دې کې زَيْدٌ فاعل دی او ښکاره اسم دی او ضَرَبْتُ فاعل ضمیر دی.

مضمر فاعل پر دوه ډوله دی: ۱- بارز ۲- مستتر.

بارز هغه دی، چې په فعل پورې ښکاره نښتی وي، لکه:

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ضَرَبْتَ | ضَرَبْتُمَا | ضَرَبْتُمْ | ضَرَبْتِ | ضَرَبْتُمَا | ضَرَبْتُنَّ |

او مستتر ضمیر هغې ته وایي، چې په فعل کې پټ وي او ښکاره نه وي، لکه:

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ضَرَبَ | ضَرَبَا | ضَرَبُوْا | ضَرَبتْ | ضَرَبَتَا | ضَرَبْنَ |

همداراز په يَضْرِبُ واحد مذکر غائب د مضارع کې هُوَ، په تَضْرِبُ واحد مؤنث غائبه کې هِيَ. تَضْرِبُ واحد مذکر مخاطب کې أَنْتَ او أَضْرِبُ واحد متکلم کې أَنَا، نَضْرِبُ متکلم مع الغير کې د نَحْنُ ضميرونه مستتر دي.

د تثنيې خلورو صيغو يَضْرِبَانِ، تَضْرِبَانِ وغيره کې "الف" او يَضْرِبُوْنَ وَتَضْرِبُوْنَ کې "واو" او يَضْرِبْنَ، تَضْرِبْنَ کې "نون" او تَضْرِبِيْنَ کې "يا" بارز ضميرونه دي.

**فايده - ۱**: کله چې د فعل فاعل ښکاره مؤنث حقيقي وي او د فعل او فاعل په منځ کې څه فاصله نه وي، يا د فعل فاعل د مؤنث حقيقي ضمير وي؛ نو دواړو صورتونو کې د فعل مؤنث راوړل ضروري دي، لکه قَامَتْ هِنْدٌ او هِنْدٌ قَامَتْ.

**ترکيب**: د هِنْدٌ قَامَتْ په دې ډول دی: هِنْدٌ مبتدا، قَامَتْ فعل، په دې کې ضمير هِيَ مستتر دی هغه فاعل، فعل سره له خپل فاعله جمله فعليه خبريه خبر د مبتدا، مبتداء سره له خبره جمله اسميه خبريه شوه.

کله چې فاعل ښکاره مؤنث حقيقي وي او د فعل او فاعل ترمنځ فاصله وي يا فاعل ښکاره مؤنث غير حقيقي وي يا فاعل ښکاره جمع مکسره وي؛ نو په دې صورتونو کې د فعل مذکر او مؤنث راوړل دواړه جائز دي، لکه: قَرَأَ الْيَومَ هِنْدٌ او قَرَأَتِ الْيَوْمَ هِنْدٌ، طَلَعَ الشَّمْسُ وَ طَلَعتِ

الشَّمْسُ، قَالَ الرِّجَالُ وَقَالَتِ الرِّجَالُ.

**فایده - ۲**: کله، چې فاعل اسم ظاهر (ښکاره اسم) وي؛ نو فعل به د ټل لپاره واحد وي، لکه: ضَرَبَ الرَّجُلُ، ضَرَبَ الرَّجُلَانِ، ضَرَبَ الرِّجَالُ؛ خو کله چې فاعل اسم ظاهر نه وي، بلکې ضمیر وي؛ نو د واحد لپاره به فعل واحد او د تثنیه لپاره به فعل تثنیه او د جمعې لپاره به فعل جمع راوړل کېږي، لکه: اَلْخَادِمُ ذَهَبَ، اَلْخَادِمَانِ ذَهَبَا، اَلْخَادِمُوْنَ ذَهَبُوْا. هو! کله چې فاعل داسې ضمیر وي، چې مکسرې جمعې ته راجع وي؛ نو فعل واحد مؤنث او جمع مذکر دواړه راوړل جائز دي، لکه: اَلرِّجَالُ قَامُوْا — اَلرِّجَالُ قَامَتْ.

**۲- مفعول مالم یسم فاعله**: هغه مفعول دی، چې د فاعل پر ځای د فعل نسبت ورته شوی وي اوفاعل د فعل حذف شوی وي، لکه: ضُرِبَ زَيْدٌ او په نورو احکامو، لکه د فعل په تثنيه والي، جمع والي تذکير او تانيث کې د فاعل په څېر دی، لکه په راتلونکیو مثالونو کې: ضُرِبَتْ هِنْدٌ وَهِنْدٌ ضُرِبَتْ ، ضُرِبَ الْيَوْمَ هِنْدٌ وَضُرِبَتِ الْيَوْمَ هِنْدٌ ، رُئِيَ الشَّمْسُ وَرُئِيَتِ الشَّمْسُ، ضُرِبَ الرِّجَالُ وَضُرِبَتِ الرِّجَالُ، ضُرِبَ الرَّجُلُ، ضُرِبَ الرَّجُلَانِ، ضُرِبَ الرِّجَالُ، اَلْخَادِمُ طُلِبَ، اَلْخَادِمَانِ طُلِبَا، اَلْخَادِمُوْنَ طُلِبُوْا ، اَلرِّجَالُ ضُرِبُوْا ، اَلرِّجَالُ ضُرِبَتْ.

**فعل مجهول ته فعل مالم یسم فاعله وايي، یعنې داسې فعل، چې د فاعل نوم يې معلوم نه وي.**

**۳- مبتدا او ۴- خبر**: هغه دوه اسمونه دي، چې له لفظي عامل څخه خالي وي، چې لومړي ته يې مبتدا (مسند اليه) او دويم ته يې خبر (مسند) وايي، په دې دواړو کې عامل معنوي دی، لکه زَيْدٌ عَالِمٌ.

مبتدا اکثرا معرفه راځي؛ خو که کله نکره وي؛ نو په يوې طريقې به يې تخصيص شوی وي، لکه چې په غټوکتابونو کې به يې ووېږنې او خبر اکثره نکره وي مثالونه يې دا دي:

زَيْدٌ أَبُوْهُ عَالِمٌ، (اللّٰهُ يَعْصِمُكَ)، اَلْعَالِمُ إِنْ جَاءَ فَأَكْرِمُوْهُ، اَللّٰهُ مَعَكُمْ.

کله خبر تر مبتدا د مخه هم راځي، لکه: فِي الدَّارِ زَيْدٌ.

**۵- د إِنَّ وغيره خبر**: إِنَّ، أَنَّ، كَأَنَّ، لَيْتَ، لٰكِنَّ، لَعَلَّ اسم ته نصب او خبر ته رفع ورکوي، لکه: إِنَّ زَيْدًا قَائِمٌ، (اعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ)، جَاءَ زَيْدٌ لٰكِنَّ بَكْرًا غَائِبٌ، لَعَلَّ الْأَمِيْرَ يُكْرِمُنِيْ، لَيْتَ الشَّبَابَ عَائِدٌ، كَأَنَّ عَمْرًوا أَسَدٌ.

**۶- د ما او لا اسم**: د ما او لا عمل له إِنَّ او أَنَّ خلاف دی اسم ته رفع او خبرته نصب ورکوي، لکه: مَازَيْدٌ قَائِمًا، لَارَجُلٌ أَفْضَلَ مِنْكَ.

**۷- د کان وغيره اسم**: كَانَ، صَارَ، أَصْبَحَ، أَمْسٰى، أَضْحٰى، ظَلَّ، بَاتَ، مَا بَرِحَ، مَا دَامَ، مَا انْفَكَّ، لَيْسَ، مَا فَتِئَ، مَا زَالَ.

دغه فعلونه اسم ته رفع او خبر ته نصب ورکوي.

لکه: كَانَ زَيْدٌ قَائِمًا. صَارَ الْفَقِيْرُ غَنِيًّا.

أَصْبَحَ (أَمْسٰى، أَضْحٰى) زَيْدٌ قَائِمًا. ظَلَّ بَكْرٌ صَائِمًا.
بَاتَ الْحَسَنُ نَائِمًا. مَا زَالَ زَيْدٌ حَلِيْمًا.
أَوْصَانِيْ بِالصَّلَاةِ مَا دُمْتُ حَيًّا. لَيْسَ زَيْدٌ قَائِمًا.

همدا راز هغه فعلونه، چې له دې راووځي هغه هم د دې په خبر عمل کوي، لکه يَكُوْنَ، كَائِنَ، كُنْ او داسې نور..

**د لا يې نفې جنس خبر:** لکه لَا رَجُلَ قَائِمٌ.

## منصوبات

منصوبات دولس دي:

| | | |
|---|---|---|
| ۱- مفعول به | ۲- مفعول مطلق | ۳- مفعول له |
| ٤- مفعول معه | ٥- مفعول فيه | ٦- حال |
| ۷- تميز | ۸- إِنّ وغيره اسم | ۹- د ما او لا خبر |
| ۱۰- د لا يې نفې جنس اسم | ۱۱- د كَانَ خبر | ۱۲- مستثنی |

**۱- مفعول به:** هغه اسم دی، چې د فاعل فعل پرې واقع وي، لکه: أَكَلَ زَيْدٌ طَعَامًا، شَرِبَ خَالِدٌ مَاءً.

**ترکیب:** أَكَلَ فعل، زَيْدٌ فاعل، طَعَامًا مفعول به، فعل خپل فاعل او مفعول به سره جمله فعيله خبريه شوه.

**فايده:** کله د قرينې له امله له مفعول به څخه فعل حذف کېږي هم، لکه يو کوربه مېلمه ته د هغه د خوشحالولو لپاره وايي: اَهْلاً وَ سَهْلًا، يعنې

أَتَيْتَ أَهْلًا وَ وَطِئْتَ سَهْلاً (ته خپلو لره راغلی یې نه پردو له، اوته نرمې ځمکې ته راغلی یې، پر تا هیڅ مشقت او تکلیف نشته) دلته أَتَيْتَ او وَطِيْتَ حذف دی.

یا یو کس له یوه شي وېرولی شي؛ نو ورته وویل شي: إِيَّاكَ وَالْأَسَدَ، يعنې اِتَّقِ نَفْسَكَ مِنَ الْأَسَدِ (له زمري نه ځان وژغوره) په دې ځای کې اِتَّقِ فعل حذف دی،یا چا ته د غږ کولو پر مهال هم کله فعل حذف کېږي، لکه: يَا غُلَامَ زَيْدٍ يعنې أَدْعُوْ غُلَامَ زَيْدٍ (زه د زيد غلام ته اواز کوم) دلته اَدْعُوْ فعل حذف دی، "یا" د ندا توری او غُلَامُ زَيْدٍ منادي دی.

**تنبيه:** کله چې منادي مضاف، لکه یا غُلَامَ زَيْدٍ، یا مشابه بالمضاف، لکه يَا قَارِئًا كِتَابًا (ای دکتاب لوستونکیه) یا نکره غیر معینه وي، لکه: يَا رَجُلًا خُذْ بِيَدِيْ؛ نو منصوبه به وي او کله چې منادي مفرد معرفه وي؛ نو پر ضمه به مبني وي، لکه: يَازَيْدُ، که منادی په الف او لام معرفه وه؛ نو د حرف نداء او منادي ترمنځ أَيُّهَا راوړل لازم دي، لکه: يَا أَيُّهَا الرَّجُلُ.

په منادي کې ترخیم هم جائز دی، تر خیم دې ته وايي، چې د کلمې له پای نه د تخفیف لپاره یو توری حذف شي، لکه په يَا مَالِكُ کې يَا مَالُ او په يَا مَنْصُوْرُ کې يَا مَنْصُ وویل شي.

په مرخمه منادی کې اصلي حرکت او ضمه دواړه جائز دي له دې امله يَا

مَالُ هم ویلی شو او یَا مَالِ هم.

**۲- مفعول مطلق** : هغه مصدر دی، چې تر فعل وروسته واقع وي او د مخکني فعل سره یې معنی یو شان وي، لکه: په ضَرَبْتُ ضَرْبًا کې ضَرْبًا او په قُمْتُ قِیَامًا کې قِیَامًا. کله د مفعول مطلق فعل د څه قرینې له امله حذف کېږي هم، لکه چې ته یو راتلونکي (سړي) ته وایې: خَیْرَ مَقْدَمٍ یعنې قَدِمْتَ قُدُوْمًا خَیْرَ مَقْدَمٍ (په خیر راغلې)

**۳- مفعول له**: هغه اسم دی، چې د هغه له امله وروستی مخکې فعل شوی وي، لکه: قُمْتُ إِکْرَامًا لِزَیْدٍ وَضَرَبْتُهُ تَأْدِیْباً، چې په دې ځای کې إِکْرَامًا او تادیبا مفعول له دی، ځکه پاځېدل د اکرام او وهل د ادب لپاره شوي دي.

**ترکیب**: ضربت فعل فاعل، ضمیر مفعول به تادیباً مفعول له، فعل له فاعل او دواړو مفعولینو سره جمله فعلیه خبریه شوه.

**۴- مفعول معه**: هغه اسم دی، چې تر "واو" وروسته واقع وي او دغه "واو" د مع په معنی سره وي، لکه: جَاءَ زَیْدٌ وَالْکِتَابَ (زید له کتاب سره راغی) جِئْتُ وَزَیْدًا (زه زید سره راغلم)

**ترکیب**: جَاءَ فعل، زَیْدٌ فاعل "واو" حرف په معنی د مَعَ، الْکِتَابَ مفعول معه، فعل سره د فاعل اومفعول معه جمله فعلیه خبریه شوه.

**۵- مفعول فیه**: هغه زمان او مکان ته وایي چې فعل پکې واقع شوی وي، دې ته ظرف هم وایي.

ظرف پر دوه ډوله دی: ۱- ظرف زمان ۲- ظرف مکان.

**ظرف زمان** دی چې د وخت معنی پکې وي او ظرف زمان پر دوه ډوله دی:

۱- مبهم ۲- محدود.

**ظرف زمان مبهم**: هغه دی، چې حد یې معلوم نه وي، لکه دَهْرٌ، حِيْنٌ .

**ظرف زمان محدود**: هغه دی، چې حد یې معلوم وي، لکه يَوْمٌ، لَيْلٌ، شَهْرٌ، سَنَةٌ.

د ظرف زمان مبهم مثال، لکه صُمْتُ دَهْراً. د ظرف زمان محدود مثال، لکه سَافَرْتُ شَهْراً.

**ظرف مکان** هم پر دوه ډوله دی: ۱- مبهم ۲- محدود.

ظرف مکان مبهم هغه ظرف ته وايي، چې حد یې نه وي معلوم، لکه أَمَامَ، خَلْفَ او محدو د هغه ته وايي، چې حد یې معلوم وي، لکه دَارٌ، مَسْجِدٌ.

د ظرف مکان مبهم مثال، لکه: جَلَسْتُ خَلْفَكَ وَقُمْتُ أَمَامَكَ، په دې کې د خَلْفَ وروسته او أَمَامَ مخکې لپاره څه ځانګړی حد نشته، بلکې د دنیا تر هغه بل سره هم کېدای شي.

د ظرف مکان محدود مثال، لکه: جلَسْتُ فِي الدَّارِ وَصَلَّيْتُ فِي الْمَسْجِدِ، په دې کې د دَارٌ کور او مسجد جومات لپاره ځانګړی حد وي.

**فایده**: ظرف مکان مبهم کې فِيْ مقدَر وي او ظرف مکان محدود کې فِيْ

مذکور وي، دا پنځه واړه مفعوله يو شاعر په خپل شعر کې په ښه انداز اداء کړېدي.

حَمِدْتُّ حَمْدًا حَامِدًا وَحَمِيْدًا . رِعَايَةَ شُكْرِهِ دَهْراً مَدِيْدًا.

ما د حامد تعريف له حميد سره وکړ، د هغه د شکر لحاظ مې وکړ د يوې اوږدې زمانې پورې".

**ترکيب**: حَمِدْتُ فعل فاعل، حَمْدًا مفعول مطلق، حَامِدًا مفعول به، "واو" حرف په معنی د مع، حَمِيْدًا مفعول معه، رِعَايَةَ مضاف، شُكْرًا مضاف اليه، "هِ" مضاف اليه، مضاف سره د مضاف اليه مضاف اليه شوه د رِعَايَةَ، مضاف سره د مضاف اليه نه مفعول له، دَهْرًا موصوف، مَدِيْدًا صفت، موصوف سره له صفت نه مفعول فيه شو، فعل سره له فاعل او ټولو مفعولونو جمله فعليه خبريه شوه.

۶- **حال**: هغه اسم دی، چې د فاعل، يا مفعول او يا د دواړو حال بيانوي، لکه: جَاءَ زَيْدٌ رَاكِبًا (زيد راغی په داسې حال کې، چې سپور و) جِئْتُ زَيْدًا نَائِمًا (زه راغلم زيد ته په داسې حال کې، چې هغه ويده وو) كَلَّمْتُ زَيْدًا جَالِسَيْنِ (ما له زيد سره خبرې وکړې په داسې حال کې، چې موږ دواړه ناست وو) په لومړي مثال کې رَاكِبًا د زَيْدًا حال بيان کړ زَيْدًا فاعل دی، په دويم مثال کې نَائِمًا د عَمْرً حال بيان کړ او عَمْرًا مفعول به دی او په درېيم مثال کې جَالِسَيْنِ د تُ او زَيْدًا دواړو حال بيان کړ،

چې تُ ضمیر فاعل دی او زَیْدًا مفعول به دی.

فاعل او مفعول ته ذو الحال وایي او ذوالحال اکثر معرفه وي؛ خو که کله نکره وه؛ نو حال به ترې مخکې وي، لکه: جَاءَنِیْ رَاكِبًا رَجُلٌ.

حال کله جمله هم راځي، لکه: جَاءَنِیْ زَیْدٌ وَهُوَ رَاكِبٌ، لَقَیْتُ بَكْرًا وَهُوَ جَالِسٌ.

کله ذوالحال معنوي هم راځي، لکه زَیْدًا أَكَلَ جَالِسًا په دې کې د أَكَلَ فاعل، چې هُوَ دی او مستتر دی ذوالحال واقع شوی دی.

**ترکیب ۱**: جَاءَ زَیْدٌ رَاكِبًا، جَاءَ فعل، زَیْدٌ ذوالحال، رَاكِبًا حال سره له ذوالحاله فاعل شو، د جَاءَ، فعل سره له فاعله جمله فعلیه خبریه شوه.

**ترکیب ۲**: جِئْتُ عَمْروًا نَائِمًا، جِئْتُ فعل فاعل عَمْروًا ذوالحال، نَائِمًا حال، ذوالحال سره له حال مفعول به، فعل سره له فاعل اومفعول به جمله فعلیه خبریه شوه.

**ترکیب ۳**: لَقِیْتُ بَكْرًا وَهُوَ جَالِسٌ: لَقِیْتُ فعل فاعل، بِكْرًا ذوالحال "واو" حالیه، هُوَ مبتدا، جَالِسٌ خبر، مبتدا سره له خبره جمله اسمیه خبریه حال شوه، حال سره له ذوالحال نه مفعول به شو، فعل سره له فاعل او مفعول به جمله فعلیه خبریه شوه .

**ترکیب ۴**: زَیْدٌ أَكَلَ جَالِسًا: زَیْدٌ مبتدا، أَكَلَ فعل، ضمیر د هُوَ پکې ذوالحال جَالِسًا حال، ذوالحال سره له حال فاعل شو د أَكَلَ، فعل سره

له فاعل جمله فعليه خبريه، خبر د مبتدا باقي ښکاره دی.

۷ - **تميز**: هغه اسم دی، چې د شمېر ابهام لرې کړي، لکه: رَأَيْتُ أَحَدَ عَشَرَ كَوْكَبًا. يا د وزن ابهام لرې کړي، لکه: اِشْتَرَيْتُ رِطْلاً زَيْتًا (ما يو رطل د زيتون تېل واخيستل) يا د پيمانې ابهام لرې کړي، لکه بِعْتُ قَفِيْزَيْنِ بُرًّا (ما دوه قفيزه غنم خرڅ کړل).

**ترکيب ۱**: رَأَيْتَ فعل فاعل أَحَدَ عَشَرَ مُمَيز، كَوْكَبًا تميز، مميز سره له تميزه مفعول به شو، باقي ښکاره دی.

**ترکيب ۲**: اِشْتَرَيْتُ فعل فاعل، رِطْلًا مميز، زَيتًا تميز، مميز سره له تميزه مفعول به شو.

**ترکيب ۳**: بِعْتُ فعل فاعل، قَفِيْزَيْنِ مميز، بُرًّا تميز، مميز سره له تميزه مفعول به شو.

۸ - **د إِنَّ وغيره اسم**: لکه: إِنَّ زَيْدًا قَائِمٌ.

۹ - **د ما او لا خبر**: لکه: لَا رَجُلٌ ظَرِيْفًا.

۱۰ - **د لا يې نفي جنس اسم**: لکه: لَا رَجُلَ ظَرِيْفٌ.

۱۱ - **د كانَ وغيره خبر**: لکه: كَانَ زَيْدٌ قَائِمًا.

۱۲ - **مستثنی**: هغه اسم دی، چې د استثناء تر حروفو وروسته واقع وي او دا خبره څرګندوي، چې تر اِلَّا وروسته کوم اسم دی له هغه حکم بهر دی، چې له اِلَّا نه مخکني اسم ته يې نسبت شوی دی.

د استثناء يوولس حروف دي:

۱- اِلَّا ۲- غَيْرَ ۳- سِوٰى ٤- سِوٰى

٥- حَاشَا ٦- خَلَا ۷- عَدَا ۸- مَا خَلَا

۹- مَاعَدَا ۱۰- لَيْسَ ۱۱- لَا يَكُوْنَ

له دې حروفو مخکې، چې کوم اسم واقع وي، هغه ته مستثنى منه وايي، لکه: جَاءَنِي الْقَوْمُ إِلَّا زَيْدًا (ما له قوم راغلى و؛ خو زيد نه و راغلى) دې مثال کې د راتلو نسبت قوم ته شوى او په إِلَّا سره ترې زَيْدًا خارج شوى دى؛ نو قوم مستثنى منه او زيد يې مستثنى دى.

## هغه حرفونه چې په اسم کې عمل کوي

هغه حرفونه، چې په اسم کې عمل کوي پر اووه ډوله دى:

**۱- جاره حروف**: دا اسم ته جر ورکوي، او اولس (۱۷) دي:

باؤ، تاؤ، کاف ولام و واو و منذ و مذ، خَلَا

رُبَّ، حاشَا، مِنْ، عَدَا، فِى، عَنْ، عَلٰى، حتّٰى، إِلٰى.

**مثالونه**

مَرَرْتُ بِزَيْدٍ. تَاللهِ لَأَفْعَلَنَّ كَذَا.

زَيْدٌ كَالْأَسَدِ. اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ.

وَاللهِ لَأَفْعَلَنَّ كَذَا. زَيْدٌ فِى الدَّارِ.

**۲- حروف مشبه بالفعل**: اسم ته نصب او خبر ته رفع ورکوي او دا شپږ دي:

إِنَّ، أَنَّ، كَأَنَّ، لَيْتَ، لٰكِنَّ، لَعَلَّ

دغه شپږ حروف اسم ته نصب او خبر ته رفع ورکوي.

**مثالونه**

إِنَّ زَيْدًا قَائِمٌ. بَلَغَنِيْ أَنَّ زَيْدًا مُنْطَلِقٌ.

كَأَنَّ زَيْدًا أَسَدٌ. غَابَ زَيْدٌ وَلٰكِنَّ بَكْرًا حَاضِرٌ.

**۳- ما او لا**: دا په عمل کې د لَيْسَ په څېر دی.

د مَا او لَا عمل د إِنَّ او أَنَّ خلاف دی

دا حرفونه اسم ته رفع او خبر ته نصب ورکوي.

**مثالونه**

مَا زَيْدٌ قَائِمًا. لَا رَجُلٌ ظَرِيْفًا.

**۴- لايې نفې جنس**: د دې لَا اسم اکثر مضاف منصوب وي او خبر يې مرفوع وي، لکه: لَا غُلَامَ رَجُلٍ ظَرِيْفٌ فِي الدَّارِ.

او که اسم يې نکره مفرده وي؛ نو په فتحه مبني کېږي، لکه: لَا رَجُلَ فِي الدَّارِ اوکه تر لَا وروسته معرفه وي؛ نو له دويمې معرفې سره د لَا بيا راوړل ضروري دي او په دغه ځای کې لَا عمل نه کوي او دغه دواړه معرفې به د ابتدا له امله مرفوع وي، لکه: لَازَيْدٌ عِنْدِيْ وَلَاعَمْرٌو، لَاخَالِدٌ هٰهُنَا وَلَا سَعِيْدٌ.

کله چې اسم د لَا نکره مفرده وي او وروسته تري بله نکره وي؛ نو لَا به دويم ځل راوړلی شي او په داسې صورت کې پنځه وجهې روا وي، لکه په لاندې مثالونو کې يې وګوره.

١- لَا رَجُلَ فِي الدَّارِ وَلَا امْرَأَةَ

٢- لَا رَجُلٌ فِي الدَّارِ وَلَا امْرَأَةٌ

٣- لَا رَجُلَ فِي الدَّارِ وَلَا امْرَأَةً

٤- لَا رَجُلَ فِي الدَّارِ وَلَا امْرَأَةٌ

٥- لَا رَجُلٌ فِي الدَّارِ وَلَا اِمْرَأَةَ

**۵- حروف نداء**: هغه حروف، چې منادٰی مضاف ته نصب ورکوي.

د ندا توري پنځه دي:

يَا، أَيَا، هَيَا، أَيْ، أَ، لکه: يَا عَبْدَ اللّٰهِ.

"أَيْ" همزه قريب لپاره راځي، "أَيَا" او "هَيَا" د بعيد لپاره راځي او "اَيَا" عام دی.

**۶- و**: په معنی د مع، لکه: اِسْتَوَی الْمَآءُ وَالْخَشْبَةَ.

**۷- إِلَّا**: د استثناء حرف، لکه: جَاءَ الْقَوْمُ إِلَّا زَيْدًا.

Arabic on trip

# عربي په سفر کې







### عــربي هيوادونو ته سفرونه، ژبه او ژبنۍ اړيکې

- له دې کتاب څخه په استفادې عربستان او نورو عربي هيوادونو ته د مسافرۍ په مهال کولای شی پر ځيل مطلب په مختلفو موقيتونو کې چې ستاسو ورته اړتيا پيښيږي خلک پوه کړی او دې نورو خلکو په مطلب باندې هم ښانونه پوه کړئ دا رساله په عين حال کې د عــربي ژبې د خبرو اترو د زده کړې يوه لنډه او ګټوره مجموعه ده.
- دا کتاب د پوښتني او ځواب په لړ کې د مختلفو موقعيتونو له ژبنۍ اړتياؤ سره تاسو آشنا کوي، د لغاتو او د هغه د پښتو معناګانو د ژر حل په امکاناتو مشتمله ده، د هرې کلمې په ترڅ کې د هغې تلفظ د پښتو په الفبا سره د هغې په مقابل او يا هم ترېنه لاندې ليکل شوی دی.

